# بسم الله الرحمن الرحیم

## کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | متکور |
| شاعر: | محمد اسمعیل یون |
| خپرندوی: | یون کلتوري یون |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| لومړی چاپ: | ۱۳۶۹ل کال |
| دویم چاپ: | ۱۳۸۷ل کال |
| د شاعر پرله پسې نومره: | (۴) |
| د خپرندوی پرله پسې نومره: | (۴) |
| کمپوزر: | ضیاالرحمن ضیا |

# نیولیک

# د ((متکور)) د دویم چاپ سریزه

متکور زما د شعرونو لومړۍ ټولګه ده، چې اساساً پر ۱۳۶۹ل کال چاپ شوې ده. ((اساساً پر ۱۳۶۹ل کال)) ورته ځکه وایم، چې د همدې کال په بهیر کې د افغانستان د لیکوالو ټولنې له خوا د چاپ پلان کې وه او د همدې کال د وروستیو درېو میاشتو په بهیر کې د همدې ټولنې له خوا چاپ ته لاړه. ترننه نږدې شل کاله د مخه، چاپ دومره پرمختللی نه و، هغه وخت د چاپ توري اکثره له سرپو نه جوړېدل یا او سپنیز وو، یو یو توری به په ځانګړي صندوق کې پروت و، کله چې (الف) نه تر (یا) پورې هر توری په کارېده، نو بیا به حروفچین، همغه صندوق ته، ته او اړتیا وړ توری به یې را اخیسته، دا توري به یې پر یوه ډېر اوږده مېز، چې لس پنځه متره واټن به یې درلود، په همغو جوړو شویو صندوقونو یا کورونو کې ایښي وو. د یوې کلمې لپاره که د یو توري ټولوونکي تګ اوراتګ محاسبه کړو، کېدی شي سل متره پلی واټن یې هم وهلای وي، دا نو بیا د یوه کتاب په لسګونو زرو او یا هم لکونو کلمو ته محاسبه کړه. دا توري بیا یو تربله څنګ په څنګ ایښودل کېدل او پر یوه تار تړل کېدل، په دې ډول ترې یوه کلمه، بیا

کلمې، بیا جمله او جملې او بیا هم متن جوړېدل، کله چې به دې په کې سمون راوسته، هغه کلمه به بېرته خلاصېدله، خو لنډه دا چې خورا زړه چاودون و. دا کتاب ما په همغه شکل چاپ کړی دی. زه دا مهال د کابل پوهنتون د دریېیم ټولګي محصل وم، د درسونو ترڅنګ مې نور فرهنګي مصروفیت هم




درلود او چاپخونې ته به هم هره ورځ روان وم، کله چې د کتاب د چاپ او سمون لومړني کارونه خلاص شول او ما ته یې وروستي توري راکړل، نو دا مهال ۱۳۶۹ل کال خدای پامانې وکړه، ما کتاب قدرمن استاد کاندید اکاډمیسین محمد صدیق روهي او ګران ورور محمد ابراهیم شینواري ته د سریزو لپاره وسپاره، زما بل ملګري ممتاز ارمان لا وار د مخه پرې سریزه کښلې وه، څه موده نور هم د سریزو په خاطر وځنډېده، نو ځکه خو د استاد روهي او ښاغلي ابراهیم شینواري تر سریزو لاندې (۲/۱/۱۳۷۰) او (۱۳/۱/۱۳۷۰) نېټې

ليکل شوي، ما د لومړي چاپ او دويم چاپ پر مهال دا نيټې ځکه بدلې نه کړې، چې زموږ ګران لوستونکي د هغه وخت له چاپي بهير سره لا ښه اشنا شي، چې د يو عادي کتاب چاپ هم هغه وخت څو مياشتني وا ټن ته اړتيا لرله. د زماني څرخ تاو ېږي، چا ته صبر نه کوي، اوس چې له هغې زماني نږدې شل کاله تېرېږي، استاد روهي زموږ په منځ کې نه شته او د هغه په حق کې له دعا پرته نور هيڅ زموږ له لاسه نه کېږي، ګران ابراهيم شينواري او زه (يون) ژوندي او پر خپل وطن يو، ممتاز ارمان هم رانه مهاجر شوی دی. خدای(ج) خبر چې ددې شعري جونګ تر دريم چاپ پورې به موږ ته څه پېښېږي. په همدې خاطر مې د خپل تېر شلکلن فرهنګي کار پر بيا سمون، اوډون او بيا چاپ لاس پورې کړ، پر ژوند ډېر بې باوره يم او ژوند پر ما ډېر نا باوره دی، نه غواړم زما پر کړي کار سبا ته نور څوک په تکليف شي، څه چې مې کړي، ښه دي که نا ښه، پوره دي که نيمګړي، کره دي که نا کره؟ ښه ده چې خپله يې راټول کړم چې د ټولو پازوالي زما پر خپله غاړه شي.

راتلونکی نسل به ددې وخت ونه لري، چې زموږ په ماتو ګوډو ليکنو پسې وګرځي، د هغوی ليکنې او پنځونې بايد تر موږ اوچتې وي او که اوچتې نه وي دا نو ددې مانا ورکوي، چې ژوند او فکر ولاړ دی او پرمختګ نه کوي، خو دا زموږ د اوسني نسل وظيفه ده چې خپل کارونه په خپله خلاص کړي او په هغه تسلسل کې خلل رانه ولي چې تېرو تر موږه

رارسولی او زموږ دنده ده، چې تر بل پښت یې ورسوو، د بشري ژوند ارتقا د همدغه تسلسل ترکیب دی.

له ټولو قدرمنو لیکوالو دا هیله لرم، له یوه نسل څخه بل ته کلتوري خلا پرې نږدي او تر خپله وسه پورې د وخت له تخنیکي امکاناتو ګټه پورته کړي او خپله ځاني او ملي، ټوله کلتوري شتمني خوندي کړي.

د همدې هیلې د برې په ارمان
پوهندوی محمد اسمعیل یون
کابل- افغانستان
۱۳۸۷ل کال، د سلواغې ۷مه.

# سریزه

په وروستیو څلورو کلونو کې، چې کېدی شي د فرهنګي ازادۍ پیلامه یې وبولو، زموږ د هنري فرهنګ په تېره د شعر په ګلبڼ کې رنګارنګ ګلان وغوړېدل او د ادب او هنر د مینوالو زړونه یې باغ باغ کړل. رښتیا خبره داده، کله چې د هنر د ازادۍ وږمه په غرو، رغو، کلو او بانډو وچلېږي د شعر بلبل یې د هر کلي لپاره ګلورینې ترانې وایي. د تعجب خبره نه ده حتی هغه شاعران چې د کوم طلسم تر اغېزې لاندې له ځانه پردي شوي وو، له مسخ شوي حالت نه بېرته راوګرځېدل داسې ښکارېده چې هغوی خپله حافظه ترلاسه کړه، خپل کلی مالت او دوستان او دښمنان یې وپېژندل. زه په دې خبره بحث نه کوم چې د شعر ګلبوټي په هوسا او بسیا خاوره کې ښه وده کوي او که بحراني حالت د شاعر احساس راوېښوي او طغیان ته یې لمسوي، خو د دې خبرې یادونه ضروري ګڼم چې شعر او د تخلیق ازادي د مجنون او لیلا په شان یو له بله جدا یې نه شي زغملای، چېرې چې د تخلیق ازادي نــــه وه خدای خبر چې څومره خبرې به د شاعرانو په مغـــــزو کې پــــــه ابدي خوب ویــــدې شــــوې وي، څومره د شعر چینې به وچې

شـوې وي، څـومره اسـتعدادونه بـه متهکـور پـاتې شـوي وي او څومره خبرې به په نه زړه ويل شوې وي، حتی هغه کسان چې لـه شاعر نه له پلان سره سم شعرونه غواړي د تخليق له ازادۍ سره مخالفت نه کوي، خو هغوی د تخليق ازادي داسې تعبيروي: مـوږ شـاعر تـه ازادي ورکـوو چـې زمـوږ دښـمنانو تـه کنځلـې وکړي. دا دی د تخليق د ازادۍ اصلي او ژور مفهوم.

زه پوهېږم چې ځينې کسان به ددغـو يـادونو پـه لوسـتلو سـره بې حوصلې شوې وي او وبه وايي چې دا خو زړې بابولالې دي، د هغو تکرارول څه ګټه لري؟ ښه، دا نصيحت به ومنو خو دا هم بايد ووايو چې په تاريخ کې سپين فصل نه شته. زما ښه پـه يـاد دي چې د داود په جمهوريت کې د تاريخ په درسي مفرداتو کې د ظاهرشاه دوره حذف شوې وه او لـه موجوديت نـه يـې انکـار شوی و خو ما ورته وويل چې په تاريخ کې سـپين فصـل يـوازې په اسطوره يې دوره پورې اړه لري او بيا هغه خاليګاه ډکه شوه.

موږ غـواړو پـر دغـه ټکـي زور واچوو چې فرهنګ يـوازې د دموکراسۍ په فضا کې وده وکولای شي، که څوک غواړي چې په دې خاوره کې فرهنګ وغوړېږي نو بايـد د نوښت ازادۍ تـه درناوی وکـــړي، پـه تېرو څلورو کلونو کـې سره لـه دې چې جګـړې زمـوږ خـــاوره دخپلـو بچيـانو پـه وينـو ولمبولـه، ودانـۍ يـې پـه کنـډوالو بدلـــې کـړې، د کونـډو، بـورو او يتيمانو اسوېلو يې د فلک مانۍ توره کړه، باغونـه، ځنګلونـه يې پو پناه کړل او مادي هستي يې تالا کړه خو لـه دې ټولـو سـره

سره د فرهنګ په برخه کې د يوې نسبي ازادۍ له برکته يو څه تنوع او ښکلا ليدله کېږي.

د دولس کلنې جګړې په وړاندې د شاعرانو انتطباعات او تاثرات يو شانته نه دي: څوک د اتلانو حماسې انځوروي، څوک د شهيدانو پر مقبرو اوښکې تويوي، څوک د سولې ارمانونه بيانوي، څوک وران کلي او زړې خاطرې را په يادوي، څوک د نهيلۍ او بېوسۍ نغمې غږوي، څوک سباوون ته په تمه ناست دي او ځينې په تورتم کې د اميد مشالونه ګوري.

د (متېکور) په نامه د شعرونو دغه مجموعه چې د ځوان او حساس شاعر، اسمعيل يون د اند ښنو امېل دی، د پښتني غاړې لپاره په ډېر ظرافت جوړ شوی دی، دا مجموعه د پښتو په فرهنګي ګالرۍ کې يوه ښکلې تابلو ده، چې له خپل ولس سره د اورنۍ مينې په زمينه کې انځور شوې ده، دا مجموعه د صداقت او وجدان غږ دی چې د يوه فرهنګيالي ځوان د احساساتو ترجماني کوي او څه چې وايي شاعرانه مګر رښتيا دي.

که څوک د دې مجموعې په لفظي اړخونو څېړنې کوي نو ښايي چې په لوی لاس به خپل ځان له هغه هــنري اتذاذ څخه

بې برخې کړي چې د شعر په کليت، انسجام، تصوير او رسالت کې پروت دی. د ځوان شاعر اسمعيل د شعر هره ټوټه يوه هنري

تابلو ده چې په هغه کې ښکلا، تناسب او د خیال ظرافت ځان ښکاره کوي. اسمعیل یون د خپل وخت تصویر ایستلی دی او په دغه تصویر کې یې خپل موقعیت هم ښودلی دی.

هو، هغه متکور شوی پاتې دی او ولې به متکور نه پاتې کېږي. هغه شاعر دی، زموږ د وخت شاعر چې نه یې ((لېوني)) خوښېږي او نه له ((هوښیارانو)) سره په یوه لاره تللای شي. دده برخلیک دادی چې متکور پاتې شي او زموږ اکثر شاعران همداسې دي. زموږ د وخت شاعر له معنوي ویاړ نه پرته بل هېڅ نه لري او نه یې لرلی شي: ((دواړه نه کېږي رحمانه یا به دین کړې یا دنیا.)) خو ځوک چې معنوي ویاړ لري هغه په واقعیت کې هر څه لري:

**خرقه پوشو په خرقه کې دی موندلی**
**هغه حظ چې په دنیا کې دنیا دار کا**

د اسمعیل یون شعرونه تر زیاتې اندازې له خپل کلتور سره تړلي دي او له خاصو حالاتو نه یې رنګ اخیستی دی. دا تصادفي خبره نه ده چې د شاعر په تصویرونو کې د اور لمبې، د وینو ځپې، د اوښکو سیند، قطار قطار جنازې، اغزنه خوني لار، د تېزابو باران، اورنی اسمان او بالاخره سوی اسمعیل تر سترګو کېږي. شاعر هغه څه ته اریان پاتې دي چې نور خلک هم ورته اریان دي: د وینو سوداګري د معنویت

سقوط، د عقيدې او اعتماد بحران، د شخصي ګټې په مقابل کې له ټولو اخلاقي نورمونو نه تېرېدل او داسې نور.

زه نه غواړم چې د دغې مجموعې په باره کې د خپل برداشت ټول اړخونه بيان کړم او يا دده د اشعارو مضمون تفسير کړم. پرېږدئ چې لوستونکي دده شعر ته له خپلو عينکو څخه وګوري، په دې مجموعه کې رمزي شعرونه هم شته، خو څوک چې له مور سره او سېږي هغوی په اسانۍ سره په دغو رمزونو پوهېدی شي. اسمعيل ځوان دی او ځوانان خپل احساسات نېغ په نېغه بيانوي زه فکر کوم چې زمان به دغه د استعداد خاوند شاعر ته لا زياتې هنري هستونې ورپه برخه کړي.

په درناوي

کانديد اکاډميسين

محمد صديق روهي

د خوشال د فرهنګي ټولنې رئيس

۲/۱/۱۳۷۰

# تقريض

هسې خو په ټوليزه توګه ژوند د خوږو ترخو، لوړو ژورو، بريو ناکاميو، اميدونو او نهيليو نوم دی. خو د ژوند د ژورو تل ته رسېدل او د تياره ګوټونو کشف د هر چا کار نه دی. د ژوند د رښتينې مانا پيدا کولو او پېژندلو لپاره بينا سترګو، حساس ذهن، له ولولو ډک زړه او بليغې ژبې ته اړه وي او د همدغه څيزونو څښتن ته شاعر وايي.

هغوی چې د شعر او شاعر ارزښت او استادۍ ته نه دي ملتفت کله له شعر نه علم غواړي او کله فلسفه او سياست. په داسې حال کې چې علم او سياست د يو شمېر ټاکلو پرنسيپونو او فورمولونو د ننه د نړۍ فورموليکه شرحه ده او شعر د الهام پايله. خو له نېکه مرغه زموږ زلمی وينا وال اسمعيل يون د شعر ضرورت او رسالت په رښتينې مانا درک کړی او ان له تنکي زلميښې يې په پوره ځان خبرۍ د شعريت په لار يون کړی دی، ښه ټينګ او پاخه ګامونه يې ايښي او اميد دی چې د پښتو شعر د لا لوړو پوړيو په لور نور هم ګړندي، ارزښتمن او اغېزمن ګامونه پورته کړي.

څکه يون يو داسې شاعر دی چې د شعر په ټولو باريکيو او نزاکتونو پوهېږي او زيار يې ايستلی دی، شعر وليکي کله يې

د خپل مظلوم او محکوم ولس په مظلومیت او محکومیت غم او خواشیني ځرګنده کړې ده. کله یې د خپل غیرتي او ننګیالي ولس په بریاوو ویاړلي دي، کله یې د ټولنیزو بدبختیو په وړاندې احتجاج او ګوتڅنډنه کړې ده او کله یې له خپلې مجبورۍ او بېوسۍ سر ټکولی، نو د کنایو، استعارو، تشبهاتو او الفاظو په شاعرانه کارونې سره یې شاعرانه ویاړلي، ګواښلي او ژړلي دي:

څومره مو مینه د احساس رګو کې ننوته
لکه منصور د دار ختلو سره مینه کوو

یا:

دود شو تکل د اسوېلیو په اور
ورته پرهر زړه ارماني وخندل
نور د سبا د حسن شونډې موښې
په توند (شمال) باندې ماضي وخندل

یا دا چې:

چا د اور په سترګو کې لیدلې د اوبو مینه
عقل بې احساس دی په لمن کې د پردو رغړي

او د ډېرې خوښۍ ځای دی چې زموږ شاعر د منځپانګیز نوښت ترڅنګ جولیز نوښت ته هم متوجه دی د غزلو ترڅنګ یې ازاد شعرونه هم لیکلي، ښایسته او خواږه ویینونه یې

کارولي، نوي سمبولونه او ترکيبونه يې زېږولي، د مضمون رنګيني او تنوع ته يې تر خپل وسه پام ساتلی او ژبه يې کره او معياري ده او د شعرونو دا جونګ يې د ډېرې ستاينې او بيابيا لوستلو وړ دی. خو په خواشينۍ زموږ ښه او قدرمن شاعر د خپلو ډېرو برياوو او ښېګڼو ترڅنګه ځينې ښويېدنې هم لري، کله کله يې د ځينو ناپېژندلو سمبولونو په کارونې سره د شعر ځينې بيتونه ګونګېږي او روڼ مفهوم نه شي ښندلی لکه:

څــو مــره د مــکر تــخيل تـــه کښته شوی نرم؟
په نوم د ميو راته مخکې ږدي پيالې د اوښکو

يا دا چې کله کله يې ډېر خاص او يوازې په همده پورې مربوط مسايل نظم کړي دي، چې نه يوازې عام نه دي، بلکې په خاصو مواردو کې هم کوم شعـــري ارزښت نه شي درلودای او زه افسوس کوم چې دربغه هغه يې په يو داسې خوندور جونګ کې نه وای راوړي لکه ((درې مياشتې مخکې)) او ((يادګارونه يادګارونه)). په هره توګه زه دغه جونګ يو ارزښتمن او ګټور اثر او د پښتو شعر په ځولۍ کې يې يوه رنګينه او په زړه پورې زياتونه ګڼم او يقين لرم چې درانه لوستونکي به ددې شعرونو له لوستلو پوره خوند واخلي او خپله شعري تنده به پرې ماته کړي.

اوس همدومره
د ملګرتیا په خلوص او مینه
ممتاز ارمان
۱۰/۱/۱۳۶۹

# د متکور په باب څو خبرې

اوس زموږ مخې ته یو داسې کتاب پروت دی چې په هغه کې د انساني احساس او تخیل یو عاطفي تړون پروت دی او هغه د ګران اسمعیل یون شعرونه دي.

شعر په خپل څو اړخیزتوب د یوې جالبې پدیدې شکل نیولی دی او دا ځکه چې د انسان جوړښت، هیلې او احساسات چې څومره بېلابېل دي، نو هماغومره یې د دغو احساساتو او هیلو د بیان ډول بېل دی او ځکه موږ باید هر شعر یوه نوې زېږېدنه وبولو.

شعر د انسان د نه بیانېدونکو ژورو حسي-عاطفي حالتونو د بیان سمبول دی. هغه څه چې په زړه کې ګرځي او ده ته د یوه موجود حقیقت په شان ښکاري، دی یې د شعر په وربښمین پوښ کې نغاړي او موږ ته یو ښکلی لذت بښونکی پیغام کېږي. شعر ځکه په خلکو ښه لګي چې شعر د احساساتو او مینې او معنوي غوښتنو د بڼ په ګلانو کې د سحرنۍ پرخې څاڅکي دي، چې ښکلا خوښوونکی ذوق ارضا کوي او د ماتو زړونو، ژوبلو احساساتو او لطیفو هیلو نه اورېدونکی اوغلی اواز دی چې یوازې د حساس انسان د زړه او مغزو په برجونو کې د مینې زلزله راولي.

هر شعر د شاعر د ځانګړي فکري حالت محصول دی. چې شاعر بيا طبعاً د ټولنې، چاپېريال او پېښو نه اغېزمن شوی دی او که د خپل رسالت سرته رسول غواړي، نو خپل احساس په رښتيني ډول وړاندې کوي.

د اسمعيل يون شعرونه ددې وروستيو کلونو شعرونه دي او حتماً په کې د همدې کلونو د پېښو او ټولنې انځور وينو هغه کلونه چې زموږ باتور ملت د اور او وينو په سمندر کې ولامبل، د ازمونونو په ازمون کې لا ژوندی دی او د خپل حيثيت او غرور او ستروالي ثبوت لپاره يې ويارنې هستې کړي.

که په شعر يا ليکنه کې ليکوال په صداقت سره يو څه نه وي ويلي، نو هېڅکله به همېشني نه شي او ځکه زما په نظر هغه څه چې د اسمعيل يون د شعر تر ټولو لوی برياليتوب دی، هغه دده په بيان کې صداقت دی، هغه د پغمان د جنتي چينو په غاړه د افريقا د سارا له ګرمۍ نه فريادونه نه کوي، خو د کب په شان چې د سرو تېلو په منځ کې وي ثنا هم نه وايي.

هغه، هغه څه وايي چې محسوسوي يې، ويني يې او پرې پوهېږي، هغه د اوسني بهير رښتينی حالت بيانوي او خپل عاطفي احساس ورسره په صادقانه ډول يوځای کوي، د بېلګې لپاره (د خندا قتل) او ځينې نور شعرونه کتلای شئ.

بله مسئله چې د اسمعيل په شعرونو کې په څرګند ډول ليدل کېږي، هغه يو سپېڅلی بغاوت او خپلواکه سرغړونه ده، د استاد الفت د وينا له مخې شاعران په هګيو کې د مرغانو الوتنې او د لمر سپېدو په څيرې ګرېوان کې د لمر پلوشې ليدی شي او: ((شاعران له قيد و شرطه بې پروا وي)) نو ځکه موږ د يون په شعر کې هم دغه شان شعرونه لولو:

د عشق نظر نه شول لمبه لېوني
تورو تيارو کې شول ډيوه لېوني
ميکدې خود د زهد اور کې ناځي
په کې د ېره نه دي هغه لېوني
د عشق په تور يې په دار مه ځړوئ
کله کوي چاته سجده لېوني
زموږ په کور به لمبې وي لا
ترڅو چې پاتې وي دا دوه لېوني.

(د جنګ باج) او ځينې نور شعرونه هم په دې باب د ځانګړي پام وړ دي.

اسمعيل يون په خپل شعر کې ډېر ژور حالتونه انځوروي او دا د پښتو د ولسي شعر هغه غوره عنعنه ده، چې نن سبا د نړيوال معاصر شعر يوه مهمه ځانګړنه هم ده او اوس په پښتو

معاصر شعر کې هم پیل شوې ده. د ((درې میاشتې مخکې)) شعر د یوه عشقي حالت ډېر دقیق بیان دی، همدا راز د ((غره اور اخیستی)) ((مېړتونخور)) او ځینې نور شعرونه. د کاناډايي شعر پېژندونکي ایزابل مور په عقیده، تېرېدونکو او ځانګړو شکلاوو ته تم کېدل، د حالت انځورول او د نامحسوسو غوښتنو بیان د اوسني شعر یوه خاصه عنعنه ده، د لاندې بیت په لومړۍ برخه کې یو ځانګړی حالت په ډېر ساده ډول بیان شوی دی:

زما زړګی درزا کړي او د تا شونډې رپېږي
دي څومره خوندورې زما وستا پټې خبرې

مینه او الفت لکه څنګه چې د انسانیت د خلاصون لاره ده، د شعر د ملکې د ظهورولو عامل هم دی شاعر او مین زیاتره وختونه په یوه مانا کارول کېږي. انساني مینه ((د انساني توکم بقا او دوام)) دی او د انساني مینې په خم کې رنګ شوي شعرونه همېشني او تلپاتې شعرونه دي. د اسمعیل یون په شعر کې د انساني مینې او عاطفي نوښتیز بیانونه د ((یادګارونه یادګارونه))، ((سوي اسوېلي))، ((کلیزه))، ((دعقل احساس))، ((د حسن لومه)) او ((پخه سکروټه)) تر سرلیکونو لاندې لولو. له ((سوي اسوېلي)) څخه دا څو بیتونه:

د سترګو په خوږو کې ډوبېدم نه پوهېدم
د مینې په لمبو کې تاوېدم نه پوهېدم
احساس مې عقل پرېښوده په لاره د جنون
منصور ومه په دار کې ځړېدم نه پوهېدم
موسکی شه لا هم نوره زما سوو اسوېلو ته
ساده وم چې په تا مینېدم نه پوهېدم

د اسمعیل شعر که د مینې او ښکلا پالنې هر څومره ښکلي بیانونه دي خو ورسره د هېواد او ملت له ژورې مانا نه هم ډک دي، زیاتره غزلونو کې د ښکلا او مینې تر رنګینو پوښونو لاندې د هېواد پالنې، انسان دوستی، سپېڅلي بغاوت، حق خوښوونې او خپلواکی ترانې پرتې دي. دا د پښتو د اوسني غزل یو مثبت بری دی چې د ښکلا او مینې تر پوښ لاندې د ژوند د ارزښتمنو مسایلو خواته عامه ذهنیت اړوي په لاندې بېلګه کې په ډېر خوندور ډول همدغه شان بیان شته:

چامو د مینې د جانان زلفو ته اوړونیوه
چې شنه دودونه یې زموږه په شعرو کې ځلي
زما د عشق ستونی دې لوند نه کړ پرې یو ځلې هم
څه که د میو اباسین دې اننګو کې ځلي

اسمعیل یون یو مسول شاعر دی او تل په خپل شعر کې د هېواد د تاریخي جریانونو په پام کې نیولو سره د خلکو، ټولنې او هېواد پر وړاندې خپل مسئولیت نه هېروي. هغه له خپلې مینې نه غواړي چې ((نور یې د سترګو په جادو کې بند نه کړي او پرې یې نږدي چې د منصوري وطن د غم او اور د توپانو سترى کاروان او د وطن د بچو د ویرونو فریاد او د ځوانانو او زلمو قطار، قطار جنازې ووینـي)) او همدغه حالاتو هغه مجبور کړی چې له خپل شعر نه د همدردۍ یوه ډالۍ جوړه کړي او ((په داسې حال کې چې نور د باران نه لاندې د میو په سیند کې له جانان سره غوټې وهي او خاندي او د ګلونو په بستر کې یې په نرمو شونډو، شونډې ایښې وي، خو دی (یون) د دردمن او د احساس په اور کې د کړېدلي انسان په توګه خپله ډالۍ داسې وړاندې کوي:

د شعر د بزم د مسرو ګلونه

د خپلو اوښکو په تار پېیم ترې امېل جوړوم

ډالۍ کوم یې ورته

یوه د درد او د شعرونو ډالۍ

د زړه د سوز او پرهرونو ډالۍ))

او د شاعر ډالۍ باید همدغسې وي.

د اسمعیل یون شعر د شکل له مخې ډېر ښکلی او په زړه پورې دی. غزل یې د یوې ځانګړې ښکلا خوښوونې او لوړ

ذوق، اوچتې قریحې، استعداد او مینې څرګندوی دی او له ښکلو ترکیبونو، انځورونو، تشبیهاتو، استعارو نه ډک دی.
ازاد شعر یې هم خوندور او زړه راښکوونکی دی او له انساني عاطفې او غني انځورونو نه ډک دی.
یوه بله خبره هم د یادولو وړ ده، هغه دا چې کله موږ یو شعر لولو نو په دې هم باید پوه شو چې ایا شاعر خپل د ننني احساس بیان کړی دی او که هسې د ورځې د مود مسایلو ته اړم شوی دی؟ د اسمعیل یون د شعر په څو کوچنیو بېلګو کې موږ ولیدل چې د هغه بیان مسولانه، زړور او صریح دی او هېڅ ډول تکلف او تصنع په کې نه شته، نو باید وپوهېږو چې ایا هغه په خپله هم دغه شان دی او که نه؟ زه چې د دوه کلونو راپه دېخوا له هغه سره ډېرې نږدې اړیکي لرم، نو هغه مې په عملي ژوند کې هم یو صادق او زړور انسان موندلی دی، هغه چې هر څه وایي دده له ژورې مینې او ډېر پاک احساس نه راټوکېدلي وي. هغه له شعر سره مینه لري، هوس یې نه کوي ځکه دده ته شعر په خپله یو هدف دی، داسې هدف چې هغه پرې د خپل زړه پرهرونه ټکوروي او د غمونو پېټی پرې سپکوي او نورو دردمندانو ته یې هم وړاندې کوي.
روانو بدمرغه پېښو هغه ته درانه عاطفي زیانونه رسولي دي، چې ددغو زیانونو اغېزې دده شعر ته یو ځانګړی سوز او ساز ورکړی دی او علت یې کولی شو د ((افسوس چې قبر دې معلوم وای...)) په شان شعرونو کې ومومو. خو له دې سره سره

د هغـه بـل هدف د هېـواد د لوړتيا پـه لار کې خدمت کـول دي، ددې لـوړ هدف لپـاره کلـه د شعر نـه د وسيلې پـه توګـه هم کـار اخلي او پـه دې خاطر خو پـه مجموعي ډول د هغـه شعر مقـاوم او ثابت شعر دی چې د سوو فريادونو پـه لوګيو کې يې هم د خندا ګلونه ټوکېږي او د موسکا غوټۍ خولې سپړي. هغه که د ژوند د ازمون د اور پـه سره بټۍ کې د جـوارو د دانـې پـه شـان پـه اور اوښتـی را اوښتـی او متکـور پـاتـی شـوی دی، نـو د احسـاس او عـاطفې پـه بڼ کې د مينې د نسيم وږمو د يوه ښکلي ګل پـه شـان غـوړولی دی، چې د شعرونو نغمې يې زمـوږ د زړونـو تارونـه خوځوي او ځانګړی خوځند عاشقانه حالت را ښيي.

زه دده د شعر پـه باب نور څه نـه وايـم، ځکـه د يـوه هنري اثـر د ډېرې ښې پېژندنې لپاره پـه خپلـه د همـاغـه اثـر لوستل تـر ټولـو اسانه لاره ده، خو خپلې خبرې پـه دې ډول رالنډوم: سره لـه دې چې اسـمعيل بـه لا تراوسـه د ځـانګړي سبک خاونـد نـه وي او کېـدی شي پـه ځينـو مـواردو کې د سـايل او سـليم تـر اغېـزې لاندې راغـــلی وي، خو پـه شعـــــر کې يې نوښتګر خوځون، د سپېڅلي احسـاس زړور بيـان، د ځـانګړي ښـکلا ييز ذوق شـتـه والی ، مسـوليت تـه ځيرتيا او لـه شعر سره د زړه لـه کومي مينـه او اړيکي او ترون موږ تـه دا هيلـه پيـدا کـوي، چې ډېـر ژر بـه د هغـه شعر نـور هم پـرمخ لاړ شي او د ځـانګړي سبک خاونـد بـه شي. پـه دې هيلـه چې دده شـاعرانه احسـاس تـر پـايـه دې تـه ځيـر وي چې وايي:

ګـوره احـساسه هـغه کـور کلی یوازې نه کړې !
چې ګرېوانو کې یې ټول عمر ګرځېدلې اوښکې

ده ته د شعر په لارکې له مینې ډک، بریالی او پرمخ تلونکی یون غواړو.

په مینه او درناوي
ابراهیم شینواری
۱۲/۱/۱۳۷۰

# لېوني

د عشق نظر نه شول لمبه لېوني
تورو تيارو کې شول ډيوه لېوني

ميکدې خود د زهد اور کې ناڅي
په کې د ېره نه دي هغه لېوني

دا چې بې دربغه پرې قدم ږدي اشنا !
کلي کې نه شته دي سوچه لېوني

د عشــق پــه تــور يــې پــه دار مــه ځــړوئ
کلــــه کــــوي چاتــــه ســــجده لېــــوني

زمــوږ پــه کــور بــه لمبــې بلــې وي لا
تــر څــو چــې پــاتې وي دا (دوه) لېــوني.

۲۲/۵/۱۳۶۷

## کلیزه

شعره ! ګلونه شه غوټۍ شه پاڼې پاڼې شه
د میو پاڼې
لاړ شه ! زما د یار په نرمو او خوږو زلفو کې
وځلېږه
وخنده
او زما د زړګي
د خوږې مینې د اسرو او امیدو له تله

ورته په مینه مینه
مبارکي ووایه
نن یې کلیزه ده
د ژوند کلیزه
یوه د حسن او ښکلا کلیزه
د اسمعیل د محبوبا کلیزه.

مرکزي لیلیه

# زمانه

چا زمانه څوک زمانې وخوړل
چا میخانه څوک میخانې وخوړل

زما د عشق تنکي تنکي ګلونه
د تا د سترګو پیمانې وخوړل

د اسمعیل سپېره مېره ملګري
منم چې خپلې یارانې وخوړل.

۱۳۶۷ ل کال

# او ښکه او خندا

زه او ښکه او ښکه شم پر مخ راشمه
ته ټول هوس شې او بیا ومو سېږې
زه اسو یلی شمه د سوو هیلو
ته په نڅا شې او کړس کړس وخاندې
نو زما و ستا یارانه نه شي سره
ځکه چې او ښکې خندا نه جوړېږي.

۱۹/۱۱/۱۳۶۵

# د عقل احساس

ستا د غمبورو د ښکلا سُرخي چې ځل ووهي
زما زړګی ورته له تندې ځنې جل ووهي

د شونډو جام نه دې خواږه په نورو مه دوړوه
د مینې تاو مې درنه خدای مه کړه اجل ووهي

د زړه پر تل مې پرهرونه سره او شنه غوندې شي
کله چې ټال دې سره ګلونه په وربل ووهي

زمـا د عقـل احسـاس دود شـولو د مکـر پـه اور
ځنګـه بـه حسـنه امیدونـه سـتا منـزل ووهـي

لـږ دې ګـوريـن نظـر پـه سـترګو کـې تسـل نځـوه
چـې مـې زړګـی د مینـې سـختې پـه تکـل ووهـي.

۱۱/۲/۱۳۶۲

# نازک خیال ته !

ته لا تراوسه پورې
د عشق په اور کې
د سکروټو په سر
تنها کې شوی نه یې

ته لا تراوسه پورې
د اسوېلیو او آهونو په اور
لکه نینه د اسې اوښتی نه یې

ته لا تراوسه پورې
د غم تنور کې

اور لړوني غوندې
لوغړن شوی نه يې
نو نازک خياله !
د خوښيو خياله !
د هوسونو خوشاليو خياله !
لاړ شه د عشق د اور په ګرمو لمبو
خپله سينه ومونبه
او د احساس په سيند کې ولمبېږه
بيا نو راځه !
موږه د اور بخرو
تر کاڼو کلکو سره
د عشق او پاکې مينې
په نوم سنګر ونيسه
او د اسمان کاڼو ته سر ونيسه !

۱۴/۸/۱۳۶۲

# د حیا په لاس

عشـــقه لېـــونی شـــومه د تـــا پـــه لاس
زړه دې زمـــا ورکـــړ د بـــل چـــا پـــه لاس

هجـــر د زړګـــي تـــل راتـــه وســـېزه
خـــدای خـــو دې نـــور واخلـــي د بـــلا پـــه لاس

رســـي د امیـــد کـــاروان منـــزل پـــورې
تـــم کـــه چېـــرې نـــه شـــي د جفـــا پـــه لاس

خلکو یارانه کې رنګینۍ وکړې
زه هسې ګیر شوی د حیا په لاس

څنګه به تندی په ځمکه نه وهم
وینم جام د میو د ملا په لاس

بخته ! ګدایي باندې دې مه ژاړه
د پېرې ښکلې لوبېږي د ګدا په لاس.

۱۵/۵/۱۳۶۵

# ډالۍ

نن د دیدن په ورځې
د اور او وینو تر شپېو نه وروسته
څوک د عطرونو تر باران نه لاندې
د میو سیند کې له جانان سره غوټې وهي او خاندي
څوک د هوس په میو
د مرغلرو د خوندو له پاسه
رغړي را رغړي مینه مینه وایي
چا د ګلونو په بستر کې
شونډې ایښې دي په نرمو شونډو
او د عشقونو د خوندو جامونه
بې دریغه دریغه په سرو اړوي
خو زه له درد نه رغېدلی انسان

د اور په څېر زنګېدلی انسان
د احساس اور کې کړېدلی انسان
نن د سرو اوښکو او د وینو د موسم له بڼه
خپلې خوږې مینې ته
شاعرانه او ښکلو سترګو ته یې
پستو پستو خمارې زلفو ته یې
د شعر د بزم د مسرو ګلونه
د خپلو اوښکو په تار پېیم
ترې امېل جوړوم
ډالۍ کوم یې ورته
یوه د درد او د شعرونو ډالۍ
د زړه د سوز او پرهرونو ډالۍ.

۱۳۶۷ل کال ۵مه میاشت
د لوی اختر دویمه ورځ

# ژوندی حسن

مـوږ ملامـت يـو چـې لـه ښـکلو سـره مينـه کـوو
د زړه پــــه وينــــه نـــازولو ســـره مينـــه کـــوو

چـا ده ليـدلې د اورونـو سـمندر کـې غـوټۍ؟
مـوږ لېـوني يـو چـې لـه ګلـو سـره مينـه کـوو

نــور يـــې نظــر د اننګـــو پـــه ميـــو ولمبـــوي
مـوږ يـې د تشـې خـولې خنـدلو سـره مينـه کـوو

خلک لمبه شي د ژوندي حسن له مینې څخه
مورې ساده زړي خو له تللو سره مینه کوو

څومره مو مینه د احساس رګو کې ننوته
لکه منصور د دار ختلو سره مینه کوو

اړوه جام دې د خوږو سترګو په سترګو کې مو
موږه اورونه له اور څښلو سره مینه کوو.

۵/۷/۱۳۶۷
مرکزي لیلیه

# غره او راخیستی...

نن د ښکلا د غرو د ښکلو شنو ناوونو په تل
هلته چې سپینې غیرتي اوبه به تل بهېدې
د عشق د زانو د بچیو وینې دارې وهي
رود سور بخن غوندې دی
او شاوخوا تیږې یې هم په وینو ولمبېدې
اور ورته ناځي له خندا نه شین دی
ان هلته لرې یې په تالو او ډاګونو کې هم
له ډېره تاوه د سیسیو بچي وسوزول
ځکه چې لرې لرې څه وړاندې هلته
پر هغې تورې غټې تیږې باندې
یو ښکاري (باز) ناست دی

پنجې يې سرې دي د سيسيو د زړګو په وينو
او خپل وزرونه په غرور ټپوي
(شاهين) هم پاس د اسمانو له څوکو
د ښکار نظر تړلی
څو چې د زرکو سينې وڅيري په خپلو پنجو
خو لاندې ګوري چې غره اور اخيستی
له ګڼ ځنګله څخه لوخړې خېژي
او د مرغانو بچي سېزي په کې
څوک يې لمبې نهويني
څوک يې اواز ناوري.

۱۳۶۶ل کال د سلواغې مياشت

# زولانه غمونه

غمونـــه مـــې تړلـــو پـــه غمـــو کـــې زولانـــه
لمبـــې مـــې بلـــولې د خـــرد پـــه ګرېوانـــه

غیـرت بـه مـې اغیـارو تـه ښـودلی د پښـتو وای
په مخ کې که مې خنډ نه وای (بې ننګه) پښـتانه.

۲۲/۵/۱۳۶۲
خوشال خان لیسه

# د ښکلو باران

دلته د ښکلو باران
پهلپو لپو ډکو ډکو کاسو
د خماري وربځو له شونډو څخه
اوري را اوري نازولو باندې
خو پر دې وريت اسمعيل
په دې ستي او کړېدلي باندې
د غم په څڼو زنګېدلي باندې
يو څاڅکی هم نه اوري
يو څاڅکی هم...

د ۱۳٦۷ل کال د غويي مياشت

# ازمون

عقل مې د عشق په تکل اور کې په لمبو رغړي
مينه مې خوږلن کې په انګار او په ايرو رغړي

(نن) راته په سترګو کې لمبه د قهر تاوه کړه
هيله مې له دې هم د سکروټو په سرو رغړي

خومره د اميد په مينه نازي مې ګوګل کې زړه
عشق باندې په مالګو کې په خپلو پرهرو رغړي

چا د اور په سترګو کې ليدلې د اوبو مينه؟
عقل بې احساس دی په لمن کې د پردو رغړي

بيا نازکو نرمو له ازمون نه پښې وکښلې
موږه مټکورو سره چېرته په اغزو رغړي

ښکل به مې اميد کړي د سره حسن اننګي په عشق
څکه چې نن وخت ورته په پښو کې په توبو رغړي.

۱۵/۱۲/۱۳۶۵

# پرهري امید

د دوزخي شونډو له خوند نه چې خواږه وروې
په پرهرونو مې د مالګو کاڼي ته وروې

څنګه به عقل د جنون په اور کې ونه رغېږي
داسې خوندونه د وختونو خو پرې نه وروې

دود شو زړګی مې ستا د حسن د ښکلا په نظر
د مکر دام دې له خوږو ځنې ترخه وروې

ستا د شاعر د قلم تاو به عقل لولپه کړي
د سترګو اور چې ورته تل په ګرېوانه وروې

خود به لمبه شي ستا نظر نه مټکوره نیني
د اورنیو شونډو تاو نه چې پرې سره وروې

۱۳۶۷ال کال، چنګابن

# متهکور

زه د ارمان لپاره
لکه د جوارو دانه
د اور بتهۍ کې
د ازمون په ګوتو
په مینه مینه
په اور وا وښتم را وا وښتلم
خود لمبو له تاوه
سپینه پولۍ نه شولم
او د خوږې مینې
د عشق له زوره
د اور لمبو کې
متهکور پاتې شوم.

۳/۱۱/۱۳۶۵

# د ماضي عشق

اشنا دا ستا د ماضي عشق له زوره
زه له خوندو د ننني ووتم

عشقه دا ستا د رنګينو جهان ته
خالي راغلی وم خالي ووتم

۲۱/۴/۱۳۶۷

# پټې خبرې

تر څو به مو په منځ کې وي اشنا پټې خبرې
د مینې د رازونو او حیا پټې خبرې

زما زړګی درزا کړي او د تا شونډې رپېږي
دي څو مره خوندورې زما و ستا پټې خبرې

سوزېږو به پرې زه او ته اشنا او زموږ مینه
زما او ستا په باب کړي نور همدا پټې خبرې

دنیا رقیب رقیب شوه او وختونه غمازان شول
مجبوره یو چې وکړو یاره بیا پټې خبرې

چا ویل درته چې وایه اسمعیل ته پټ رازونه
اخر یې درته ټولې کړې رسوا پټې خبرې

۴/۱۰/۱۳۶۷

# د اور تاو

د زړه تــوتې مــې پــه انګــار ونیســئ
ژونـد تـه مـې غـم عشـق تـه مـې دار ونیسـئ

اخلــم لــذت د خــوږې مینــې ترېنــه
مــا د غــم زور تــه پــه وار وار ونیســئ

پــام چــې رقیبــو لــه څــه ونــه وایــئ
زمــا پــه قتــل بانــدې یــار ونیســئ

خلکو راځئ د خوږې مینې په نوم !
د اور په تاو ما ګناهکار ونیسئ

د اسمعیل خړو سپېرو ملګرو
سورکۍ ډیوه مې په مزار ونیسئ.

۱۹/۷/۱۳۶۷
مرکزي لیله

# د حسن لومه

عقل کې ستا شیرین نظر ونښېد
ځکه جنون شو سر په سر ونښېد

د حسن لومه دې په ناز غوړوه
چې په سینه کې مې ځیگر ونښېد

وینې د مینې د ازمون وختونه؟
سر مې د مرګ په تود ډګر ونښېد

ستا د خوارہ نظر په تونـد کتلو
د زړه په تـل کې مې پرهر ونښېد

لمبه د ګرمو شوندو مه بلوه
تنها کې زړه مې په نشتر ونښېد

څومره دې حسن کې غرور تاو شوی
شوخو کتلو ته دې لمر ونښېد.

۲/۱۱/۱۳۶۵
رحمان بابا لېسه

# پخه سکروټه

عشقه جنون ومه څه نور خو نه وم
يو اسوېلی ومه څه اور خو نه وم

ستا نا کردې دي څه ويلی نه شم
د تنګه سرو د پېغور خو نه وم

چا درته ويل چې پل پر زړه ږده زما
پخه سکروټه وم لا سکور خو نه وم

ثنګکــه دې وریــت کــړم اننګیــو کــې ژر
لکــه اوربــل پــرې بانــدې خــور خــو نــه وم

دا خـــو د تـــا د حســـن اور ســـوی یـــم
کــه نــه لــه ســره دومــره تــور خــو نــه وم.

۱۵/۵/۱۳۶۲
خوشال خان لېسه

# سوی اسوېلی

د سترګو په خوړو کې ډوبېدم نه پوهېدم
د مینې په لمبو کې تاوېدم نه پوهېدم

احساس مې عقل پرېښوده په لاره د جنون
منصور ومه په دار کځړېدم نه پوهېدم

دا ستا د مینې زور و که د عشق د خوږو تاو؟
په نره چې په اور کې نڅېدم نه پوهېدم

حیرت کې شو غیرت زما د مینې په ازمون
سور ګل غوندې بې وخته رژېدم نه پوهېدم

موسکی شه لا هم نوره زما سویو اسویلو ته
ساده وم چې په تا مینېدم نه پوهېدم.

۳۱/۳/۱۳۶۲
لغمان

د خپل پلار د شهادت د تلین په درنښت.

## افسوس چې قبر دې معلوم وای !

ما به د ګرم احساس وینو باندې
د عشق د پاڼو د خندا په څپو
ستا د تناک امید پولۍ لیکلې
او د تیزابو د اورونو په سیند
به لمبېدلم ستا د عشق د تکلونو په زور
هر مازیګر به مې د پېغلو د وربل ګلونه
د خپلو سپینو توپاني اوښکو له سپینو امېلونو سره
د اور په رنګ باندې لیکلو سرو شعرونو سره
تا پر مزار شیندلو پاڼې پاڼې
افسوس چې قبر دې معلوم وای
افسوس چې قبر....

۱۳۶۲ل کال

# د ماضي خندا

د آه په تاو عشق لېوني وخندل
شونډو د ګل کې چې اغزي وخندل

عقل به وناځي احساس ته خجل
حسن د غم کې که زړګي وخندل

دود شو تکل د اسوېلیو په اور
ورته پرهر زړه ارماني وخندل

د ګل خندا یې په لمبو ونیوه
سیلۍ په مینه د سپرلي وخندل

نــورد ســبا د حســن شــونډې موښــي
پـر تونـد (شـمال) بانـدې ماضـي وخنـدل.

۲۰/۲/۱۳۶۲
خوشال لېسه

# خوږلنې سترګې

مينه کې د وخت د انګار سره موښم
اور مې د ګوګل په درانه موښم

پرېږده چې شپه د ازمون واړوم
سوزندو سکروټو کې مې زړه موښم

بله دې لمبه کړه د مغرور نظر
چا ويل چې زړګی مې په کې نه موښم

تـــه ولـــې د عشـــق لـــه زوره ځنـــګ کـــوې؟
اور کـــې خـــو د مینـــې ځيګـــر زه موښـــم

ســـتا خوږلنـو سـترګو کـې اشـنا پـه عشـق
زړه مـــې لکـــه وړه پـــه تنـــاره موښـــم

نـــور دې بـــه خـــوږو کـــې احســـاس ولـــړي
زه خـــو مـــې شـــعرونو کـــې ترخـــه موښـــم

بـــوی بـــه کړمـــه يـــاره ســـتا د حســـن ګـــل
نـــن چـــې يـــې اغـــزي پـــه ګريوانـــه موښـــم.

۱۸/۱۱/۱۳۶۵

# ژړغوني آه

د ژړغـــوني آه پـــر شـــونډو تلوســـې وځلـــي
د عشــق پــه عقــل کــې چــې مينــې تــه اســرې وځلــي

واوړي تکــل د اور تــر پولــو پــه تنهــاکو پښــو
د مســـتقبل پـــر اننګـــو چـــې ارادې وځلـــي

شعره ! د اوښکو حسن ښکل کړه په چاودلو شونډو
چې د ويـر بحـر کـې دې عشـق څپـې څپـې وځلـي

لامبي ځپه چې ستا د خوند زما د اوښکو په سیند
د پرهـري امیـد پـه سـترګو مـې ګیلـې وځلـي

داسې مې ښکاري د سورکي زړګي پولۍ له لرې
لکـه د یـار پـه اننګـو کـې چـې خـولې وځلـي

وارووه عشـقه ! د تنکـي ارمـان غـوټۍ مـې پـه اور
اخـر بـه سـتا د هـوس سـیند کـې هم لمبـې وځلـي.

۱۲/۱۰/۱۳۶۲

# تر کاڼو لاندې

زړه نــــه لمبــــې چـــې د خنــــدا وتلــــې
ورتـــه لـــه خـــولې نـــه مـــې د تــا وتلــې

دا چــې هغــوی پــه زغــرده خانــدي پــر مــوږ
څـــه شـــی دې زړه نـــه ورتـــه بیــا وتلــې

ټـــول قوتونــــــه د پردیـــــو دلتـــــــه
ښـــکاره راغلـــي دي پـــه غـــلا وتلـــې

دا اســمعيل تــر كــاڼو لانــدې كــړۍ ښــه
بيــا يــې لــه خــولې څنــې رښــتيا وتلــې.

١٣٦٧ل كال

# درې میاشتې مخکې

درې میاشتې مخکې
زه او یار مې سره
سترګې پر سترګو شولو
ما د هغې سترګو کې
هغې زما سترګو کې
د یوه ژوند د امیدونو کیسه وکړله
سره موسکي شولو او ومو خندل
بیا د هغې سترګو کې
زما د هیلو امیدونو انځور وګرځېده
او بیا زما سترګو کې
ددې د سترګو تصویر پاتې شو
تراوسه پورې.

# هغه چاته چې ستړګې يې زما
# ستړګو ته خواږه راکوي

نور دې د ستړګو په خوږو کې ستړګې نه موښمه
نور دې د ګرمو اننګو په ګرمو ميو نظر نه ډوبوم
نور دې د نرمو ښکلو شونډو د خوندونو سيند کې نه لامبمه
رانه هېرېږي
رانه هېرېږي د ستي هيلو ساړه اسوېلي
د غيرتي اوښکو مست رود ، د وينو مستې څپې
د منصوري وطن د وينو ليکې
د غم او اور د توپانونو سترې شوې کاروان
نو راته مه ګوره خوږې خوږې په ښکلو ستړګو
او پر احساس مې د سرو شونډو د خوندونو خواږه مه اوروه

چې رانه هېر نه شي
ددې وطن د هر بچوني د ویرونو فریاد
د وینو رود د اوښکو سیند
او د ځوانانو او زلمو کتار کتار جنازې
کتار کتار...

۱/۴/۱۳۶۷

# د وینو رود نیل

احساس پر عقل بلې کړې لمبې په لپو لپو
جنونه په سر واړوه نشې په لپو لپو

د شونډو تبسم دې رانه ګرد د غم ونه لید
د زړه وینې که غرپ کړې زمانې په لپو لپو

موسکۍ شه د سورکي پرهر د وینو رود نیل ته
حسینې ډکوه ترښنه پیالې په لپو لپو

لذت کې د خندا دې چې لاهو شي خوند د نورو
په سترګو کې مې تاوې شي ګیلې په لپو لپو

اغــزو د ګــل د پــانو تبســم دی پــه اور ســوی
پــه زلفــو چــې دې تــومبم ترانــې پــه لپــو لپــو

هوس دې د ښایست بیا د جنون په سینه کې لامبي
د عشـق پـه زړه مـې موښـي چـې ایـرې پـه لپـو لپـو.

۲۱/۲/۱۳۶۲

# د وير سکروټې

عشـــقه زورور يــې خـــو تـــوبې مـــه مـــاتوه
شـــونډو د اشـــنا تـــه اوســـېلې مـــه مـــاتوه

پـــروت پـــه کـــې لـــذت دی د زمـــان د لېونـــو
پـــام کـــوه ســـاقي ډکـــې پيـــالې مـــه مـــاتوه

ځـو اشـنا پـه عشـق کـې پـر اغزنـه خـوني لار
غېـــرې د وصـــال تـــه ارادې مـــه مـــاتوه

وکـــړه پـــه مغـــرور نظـــر خـــواړه خـــواړه کاتـــه
تاتـــه مـــې اســـرې دي دا اســـرې مـــه مـــاتوه

موښم نن په شونډو ستا سره ښکلي اننګي
کړې دې وعدې وې اوس وعدې مه ماتوه

خير که زه دې وريت کړم په سکروټو کې د وير
ځانګه د اميد مې زمانې مه ماتوه

راز د محبت په کې نغښتى دى د يار
سويه اسمعيله زولنې مه ماتوه.

۱۳/۱۱/۱۳۶۵

# د اوښکو جنازې

پر سوي مخ مې دي روانې سلسلې د اوښکو
راته خندېږه او کوه مې تماشې د اوښکو

چا مې پر شونډو د خندا د څپې ځل ونه لید
عشقه ! ګرم نه یمه راغلي مرحلې د اوښکو

د کوم احساس له خولې نه وځي د زګېرویو کتار
چې د شعر سترګو نه مې خوشې دي ویالې د اوښکو

دا بــه تصــوير د چــا د ويــر وي انځــور كــړی قلــم
ځكــه يــې نــوكې نــه تــويېږي ترانــې د اوښــكو

څــومره د مكــر تخيــل تــه كښــته شــوي نــرم !
پــه نـوم د ميـو راتــه مـخ كـې ږدي پيـالې د اوښـكو

څنګــه بــه ګــاټي متهكــور نــه شــي د ســترګو زمــا
چې شـپه او ورځ ترېنـه تـاوېږي سـرې لمبې د اوښـكو

شــي بـه كـږې د يـار مغـرورې سـترګې عقلـه كـه نـه؟
چـې ورتـه يوسـم سـتړې شـوې اند ېښـنې د اوښــكو

ســتا د لــذت نـاظر دې ســېزي د عشــق هيلــه زمــا
اخــر بــه ورم د خنــدا كــټ كــې جنــازې د اوښــكو.

۲/۲/۱۳۶۶

# له جېل نه... ګیله

(( ته په وړو کي جېل کې
موږ دلته لوی زندان کې ))
د یوې مینې د ارمان په هیله وسوزېدو
ته خو لا ښه وې
د خوږې مینې د پاڼو شنه دودونه دې ونه لیدلو
موږ ورته ښه کتلې
چې مو د مینې سره ګلونه د یارانو د لمبو
د سمندر څپو کې وسوزېدل
ژبه مو ګونګه وه تړلې وه د اور د دار په
مستو لیکو
چغې مو نه شوې وهی
ښه مو لیدله خپله مینه د انګار د سمندر ګوتو کې

پاڼې يې ورژېدې
خندا يې وچه شوله
او ليلا يې حسن يې مړاوی شو د درد په چړو
خو مينه مړه نه ده لا
پام چې نهيلی نه شې
اوس نو زموږه مينه
زما او تا غوندې يو څو لېونې
په مينه مست ځيرې ګرېوان
او سربېرې غواړې
چې ورته وناځې لمبه شې
او د خپلو زړګو د وينو مستې فوارې
ورته امېل امېل کړې
بيا به زموږه مينه
له خندا شنه شې
او ګلونه به يې بيا زلفو کې وتو کېږي
او بيا به موږ لېونې
هم ورته هلته له خندا نه شنه شو.

۱۲/۲/۱۳٦۸

## د لمبو څاڅکي

د نـــن پـــه ائینـــه کـــې چـــې موســـکې راتـــه پـــرون دی
اشـــنا دادې ادا ده کـــه جـــادو او کـــه جنـــون دی؟

د کـوم یـو ګـل پـر شـونډو د خنـدا سـندره شـنه کـړم
پـر پېغلـو پسـرلیو مـې راغلـې چـې کونتـون دی

پـه ګرمـو شـونډو خانـدو خـو یـو بـل ښـکلوی نـه شـو
زمـا و ددې تـرمنځ څـه د ډیورنـډ کرښـې تـړون دی

منمـه د ((شـمال)) د لمبـو څـاڅکي دلتـه نـه شـته
ددې ګلبڼ پـر پـاڼو يـې پـرې ايښـى خـو طـاعون دى

کـوم چـا کـه د رښـتينو لېونـو پوښـتنه وکـړه !
په دغـه وران مالـت کې خو يـې يو استازى يون دى.

۲۳/۸/۱۳۶۹

# د خندا قتل

موږ د خدای په کتابو
او د نبي په احادیثو کې
دا لوستي وو چې:
قتل د روح لویه ګناه ده په ژوندون کې د چا
او ملایکې د خدای ذات دي
چې له ټولو ګناهو نه پاکې
خو اوس کلونه کېږي
چې تر مودو نه مخکې
زموږ د سوي زړه د مینې کور نه
د بېګناوو ماشومانو او ځوانانو
د ژوندون جنازې
د فرښتو په بېګناوو ګوتو
ځي د اسمان غېږې ته
نو اوس د مینې تخیل کې د وجدان

او عاطفي د سمندر پر څپو ناستو
د احساس بڅرو
ووايئ چې:
دا بېګناهه او معصومې فرښتې به زياتي
د نازولو ماشومانو د تنکۍ خندا په قتل
ګنهکارې نه شي !؟

۲۲/۴/۱۳۶۹

# د آه سکروټې

د درد پــه ژرنـده دل نــه شـوې زمــا د عشــق نينــې
د نرمــو شــونډو ځــل نــه شـوې زمــا د عشــق نينــې

د ســوز پــه اور چــې اوړي نــن د مکــر پــه خــوږو
د چــا د زلفــو ول نــه شــوې زمــا د عشــق نينــې

تنهــاک اميــد مــې واړوه تــر پولــو د ازمــون
لمبــو تــه بې تکــل نــه شــوې زمــا د عشــق نينــې

د چا د مينې سيند کې مې احساس غوټې وهلې
چې بندې په اجل نه شوې زما د عشق نينې

د آه سکروټو دود کړلې بټيو کې د اور
پوليو سره مل نه شوې زما د عشق نينې.

۲۲/۹/۱۳۶۲

# غیرتي لېمه

زما د مینې ښکلا
لکه بېباکه ماښو
د قهرجنو لمبو
د سیند په مستو څپو
تاوه راتاوه شوه
او ډوبه شوله
او د امید هیله مې
د اور په غېږه کې په نرمو پښو
په اسوېلو اسوېلو

ونخښېده
خو زه هغسې چې پخوا وم‌ه څه
هسې به یم هسې به او سمه لا
نه به د چا خندا ته وخاندمه
نه به قبلې ته د ښکلا او حسن
د خپل غیرت لېمه کاږه ونیسم.

۴/۱۰/۱۳۶۶

# دمیو اباسین

د مینې څرېکه مې د وریت زړګي پردو کې ځلي
عشقه ګناه دې زما سویو اسوېلو کې ځلي

چا مو د مینې د جانان زلفو ته اور ونیوه
چې شنه دودونه یې زموږه په شعرو کې ځلي

دا خو زما د اسوېلو د تپ تاونه وینې
ځکه خوارږه یې د سرو شونډو په سرو کې ځلي

زما د عشق ستونی دې لوند نه کړ پرې یو ځلې هم
څه که د میو اباسین دې اننګو کې ځلي

پـام چـې پـه تريـو نظـر يـې حسـن تـه نظـر ونـه کـړې
د خوشـال تـوره مـې تراوسـه لا پښــتو کـې ځلـي.

۲۱/۴/۱۳۶۲
خوشال لېسه

# د اوښکو سمندر

وخت چې له غوسې نه سور تکل ته شونډې وسېړي
ژوند په اوښکو لوند شي او اجل ته شونډې وسېړي

مینې سمندر د سپينو اوښکو په ځير ونه لید
اوس به نو زړګی د چا تسل ته شونډې وسېړي

تاوه شي ترخو کې د احساس د فریاد چغه پرې
دا د غم قلم مې چې غزل ته شونډې وسېړي

ډوب چې وي زړګی د اورنـي غـم پـه سـيندونو کـې
چېـرې بـه حسـينې سـتا وربـل تـه شـونډې وسـپړي

ورغــــړي تنهـــاک هــــوس مــــاحول د اغزيــــو کــــې
عقــل او اميــد چــې مســتقبل تــه شــونډې وســپړي

تــاوه کــړه لمبــه د ګرمــو شــونډو پــه ســينه کــې مــې
وريـت ويـده زخمونـه بـه يـې ځـل تـه شـونډې وسـپړي.

١٣٦٢ل کال، تله

# د خوږو مکر

تنهاک ځیګر مې حسن په سپرغیو سولوي
د آه اوښکه مې عشق په مایوسیو سولوي

د عقل د احساس سترګو ونه لیده پرهر
د وخت د اور په زور یې په اغزیو سولوي

خندا یې سمندر شي زما درد ته په هوس
د مینې د بڼ ګل مې په سیلیو سولوي

د عشــق د خــوږ مکــر تــه نظــر کــړئ اوښــکو نــن !
پـــه شـــوندو بانـــدې آه د لېونیـــو ســـولوي

د درد پـه کړايـي کې پـه زړګـي شـي خـود لـوګی
خــوږې زلفــې چــې يــار پــه اننګيــو ســولوي

د سـور مسـتقبل تـال کې بـه عشـق وزانګي اخـر
خنــدا کــه نــن اميــد پــه اســوېليو ســولوي.

۲۹/۷/۱۳۶۲

# ارام سمندر ته !

ولې غلی او ارام یې
ته خبر یې چې څه وشول او څه کېږي
د نړۍ په وچو غرونو ، سپېرو دښتو ، ځنګلو کې؟
ته خبر یې چې څه اوري
د اسمان له ګرېوانه نه
د بېوسه روح پر مینو؟
ته خبر یې چې ټول ژوي

یو د بل د ژوند په بیه د ژوندون شېبې رانیسي؟
ته خبر یې د وحشت د پاچایانو
واکمني د قاف له غرونو ان زموږ تر کوره رسي؟
ته خبر یې چې زموږ د کلي خوا کې
هره ورځې د کارغانو ډلې ډلې
د وګړو پر سینو باندې ټونګې کړي؟
که نور هم غواړې همداسې:
چې ماران او ګمځرې دې
د سیسیو بچي وخوري
او پر سمه لویه لار دې
د لېوانو کاروانونه
د شپنو په رمو ګډ شي
که نور هم غواړې همداسې
چې بیا هم روحي وګړي
د چا مینې ته اور ورکړي
د چار روح کړي تیږو لاندې؟
نو که داسې نه وي خو ځه
تر پېړیو زغم نه وروسته
په ځلور کونجه دنیا کې
د توپان نغمه خوره کړه

چې نړۍ له بوی شي پاکه
او شي ړنګه پاچاهي د ځناورو ، ګنهکارو هوسونو
او څو تنه بېګناه به
شي سپاره د نوح بېړۍ کې.

۲۲/۴/۱۳۶۹

# د تېزابو باران

زما د عشق د تنکو هيلو سترګې
لا د هوس د خوړلنيو په بڼ
د ګل پر پاڼو غوړېدلې نه وې
چې تا د قهر د تېزابو باران
د اورني اسمان له شونډو څخه
په زغرده زغرده پرې راووروه
او د تنکۍ مينې په سترګو کې دې
د وير لمبه په خندا تاوه کړه راتاوه کړله.

۲۲/۲/۱۳۶۲

# سندرغاړي

د ختيځ- لوېديځ وګړو !
د مرګي له وېرې مړاو مړاو هيلو !
د ژوندون په جبل کې بندو د نړۍ د هوسونو پاچايانو !
او د عشق د رنګينيو د سيندو مستو څپو کې
ستړو ستړو ماښو ګانو !
د ژوندون هره شېبه مو
د نڅا و خنداګانو په تالونو کې کړه تېره
په هر رګ کې د وجود مو
د عطرو وينه جاري کړئ
او هوس هوس زړګو ته
د خوښيو لمبې غرپ کړئ !
چې کلونه مو دې وشوې

د مرګونو سندرغاړي
زموږ کور کې مېلمانه دي
هغه لویه هوجره ګورئ !
چې شاوخوا یې د زمزم ویالو نیولې
او په مخ کې یې د توتو انګور تاکو ونو شین
سیوری جوړ کړی
په همدغه ځای کې ناست دي
یو سپین ږیری په کې نه شته
ټول ځوانان ترېنه راتاو دي
په هر وار چې ترنګ او ترونګ شي
له څو تنو روح جلا شي
بس کلونه مودې وشوې
چې زموږ د کور هوجره کې
سندرغاړي مېلمانه دي.

۲۲/۴/۱۳۶۹

# د طاعون په لوپټه کې

د طاعون په لوپټه کې
د سرزورو احساساتو
شینکی فصل ټوکېدلی
د یاغي مینې په تور یې
لاس و پښې دي پرې تړلې
د اجل وږمه پرې اوري
رژوي یې خنداګانې
خو د روح قاتلان (دواړه)
ورته ګوتې پر غاښ ناست دي
وايي څه متهکور عشق دی
وايي څه لمبه جذبه ده
د اورونو ټال کې زانګي
د ژوندون سندرې وايي !؟

۵/۲/۱۳۶۹

# د احساس لوخړه

ما د لمبو د ترحم په سینه کې ولمبوئ
او د حسین قهر په سترګو کې مې
د توندې مینې د احساس لوخړه
د اور په غېږه کې د وير په تنور
د اور لړوني غوندې تاوه کړئ
د مينې په لاس
څو چې د عشق له کاڼو سترګو څخه
د سوزېدلي احساس کړيکه باندې
د عاطفې اوښکې راوڅڅېږي
او د جنون پر دود وهلې دښته
تنکي تنکي ګلان راوټوکېږي.

۲۵/۲/۱۳۶۲
خوشال خان لېسه

# يادګارونه يادګارونه

ما درته ليکلي واى شعرونه او شعرونه
تا زلفو کې ايښي واى ګلونه او ګلونه
ما په وچو شونډو درنه کړي واى سوالونه
تا په زړه را ايښي واى زخمونه او زخمونه
ما ژوند ته نيولي واى دارونه او دارونه
ستا شونډو خندا کړاى غورځنګونه غورځنګونه
زړه کې زما بل واى سره اورونه سره اورونه
ستا ژوندون ډيوې واى څراغونه څراغونه
دغسې واى هيلې او همداسې ارمانونه
ما ورته ژړلي تا خندلي ولونه ولونه
حسن به د تا و داستانونه داستانونه
ژوند به ټول زما و يادګارونه يادګارونه.

۲۱/۷/۱۳۶۸

# کاڼو ونه ژړلې

عشق د هوس په لمبو
د مستو کـاڼو د خندا په ځپو
د تـېزابـونو د اورونو ژرنده
تاوه راتاوه کړه د درد په وینو
او د امید د ګلو موسک نظریې
د غم پر لیکه په اور وارا‌ړاوه راواړاوه د حسن په زور
خو کاڼو ونه ژړل
لاهسې خاندي له خندا نه شنه دي
د عـشق لـمـبو کې امیدونه کري
زړو د اغـزیـو کــې ګلـونــه کري
د خوږې مینې د ښکلا په امید
د سرو سکروټو سره تخمونه کري.

۱/۱/۱۳۶۷

# مېږتونخور

څنګ ته ناست و مه د ونې
د ټپې پرېشانۍ خيال مې سترګې ورو ورو خوبولې
پام مې شو د ونې ډډ ته
يو سورکي مېږتونخور پرې خپل وزرونه رپولو
اوږده ژبه يې له خولې نه بهر کړې په هنر وه
چې مېږيان به پرې راټول شول
لکه غرپ د مستو ميو به يې تېر کړلو له ستوني
د خوندو د عشق لمبو و مخ په پورته روان کړی
ورو نږدې شو د غومبسو د ژوندون د ځالې څنګ ته
چې ټول عمر وې له تندې جل وهلې

له غوسې نه تکې سرې په اور کې تاوې
کړه يې ژبه ورته مخکې په هنر په مکر وړاندې
يو ناڅاپه سرو غومبسو يې پر ژبه پر مښو که
او پر سترګو
زهرجن نېشونه ښخ کړل
((لس يو ولس شپې)) وروسته مې کتل چې:
درد کې تاو مېږتو نخور
د ونې ډډ نه راګوزار شو.

۱۴/۲/۱۳۶۹

# د امید څانګه

د زړه کـور کـې مـې د شـعر غـوټۍ غـوړېږي
د خـــزان ســـره ســـیلۍ ده رژوي یـــې

د امیـد څانګــه چــې لــږ شــانته اوږده شــي
د ظـالم پـه لاس کـې لـور دی پرېکـوي یـې.

۱۳۶۵ل کال
خوشال لېسه

# د اسرافیل شپېلۍ

د اورنیــو اغــزو زړه کــې ښــکلا چېرتــه لګــي
د ســوو شــونډو پــه لمبــو کــې خنـدا چېرتـه لګـي

زمـــا د زړه د پرهرونـــو ســـره او شـــنه ګلونـــه
ســتا د خمــارو زلفــو ول کــې اشــنا چېرتــه لګــي

مــنم احســاس مــې د اورونــو زړو کــې ګــل ټوکــوي
خــو ســتا د بــزم رنګینیــو کــې دا چېرتــه لګــي

خانده په کړس مې د تناکو شونډو لیکو باندې
د خوږلنیو په محفل کې ګډا چېرته لګي

د اسرافیل د شپېلۍ غږ ورته راورسېده
د پښتنو سپېره وطن کې رڼا چېرته لګي

خود ستا د مینې د رنګینې کوڅې ګوټ ته نه ځم
د میو ډنډ کې د سرو اوښکو ځلا چېرته لګي.

۱۱/۷/۱۳۶۷

# د جنګ باج

ارمـــان د اوښــکو نـــازولو وخــــوړ
لکـه موسـکی شـبنم چـې ګلـو وخـوړ

ددې ګــلاب ګــلاب وطــن حســن مــې
څــه هــم پردیــو څــه هــم خپلــو وخــوړ

چاتـــه لمبـــه لمبـــه احســـاس وښـــیم
وطــــن زمـــــوږه نـــــابللو وخـــــوړ

څـه بـې پښــتو شـول پښــتانه د وختــو
بـــاج د جنګونـــو تـــرې مغولـــو وخـــوړ

يــو اســمعيل پــه دغــه لــوی کلــي کــې
نـــيم نـــازولو او نـــيم ښـــکلو وخـــوړ.

۱۳۶۷ل کال

# د سیند په منځ کې

چې د نن پر زلفو وتړو مبم ګلان کتار کتار
لکه شنه چې پسرلي کړم پر بیابان کتار کتار

دا خوږې خوږې خبرې دا خوږې وعدې مې خیال کې
ته کوې د جنت حورې او غلمان کتار کتار

پس له مرګه به زموږه یوه ورځ همدا اسې راشي
دریږدلې به وي دار ته رهبران کتار کتار

څه اولې مينې وسو څه خوږې ياراني دود کړو
اوس ولاړ د سيند په منځ کې پښېمان کتار کتار

بس همدا د ساده ګانو د سندرو غزل وايه
چې تر يې وځي هره ورځې هوښياران کتار کتار.

۱۳۶۹ل کال د وري مياشت

# سوی ګودر

سترګو اوترو ورته هېڅ ونه وې
د زړه سندرو ورته هېڅ ونه وې

لویه څپه د اوبو راغلله پرې
د اور بڅرو ورته هېڅ ونه وې

هغوی زموږه وینې تویې کړلې
زموږ ملګرو ورته هېڅ ونه وې

تېـــره لمبـــه شـــوه د پردیـــو دلتـــه
زمـــوږ لښـــکرو ورتـــه هـــېڅ ونـــه وې

نظـــر مـــې ښـــکل کـــړې خـــوږې شـــونډې د یـــار
لمبـــو شـــکرو ورتـــه هـــېڅ ونـــه وې

د لـــیلا ګـــانو ګـــودر وســـوځېده
خـــو ســـرببرو ورتـــه هـــېڅ ونـــه وې

اخـــر یـــې ښـــکل کـــړ اســـمعیل پـــه شـــونډو
د چـــا خبـــرو ورتـــه هـــېڅ ونـــه وې.

۱۳۶۷ل کال د سلواغې میاشت

## مړاوي اننګي

ژونـــد ســـوزېدلو نهیلـــۍ نـــه توېـــدلې اوښـــکې
د چـــا د مینـــو جنـــازو کـــې څڅېـــدلې اوښـــکې

شـــهید و تا ســـو نـــه کـــه هلتـــه چـــا پوښـــتنه وکـــړه !
ورتـــه بـــه وایـــئ چـــې وطـــن کـــې بهېـــدلې اوښـــکې

خدایـــه د ســـتا لـــه تـــرحم او لـــه پېـــرزو مننـــه
نـــورې دې واخلـــه دا ډالـــۍ دا رالېږلـــې اوښـــکې
څـومره ښـه ښـکاري هلتـه سـتا د موسـکو شـونډو خنـدا

دلتـــه پـــه مـــړاوو اننګـــو کـــې ځلېـــدلې اوښـــکې

خـــود بـــه د رب لـــه عواطفـــو نـــه ګيلـــه کومـــه
هلتـــه خنـــداوې دلتـــه ولـــې رســـېدلې اوښـــکې

ګـــوره احساســـه هغـــه کـــور کلـــی يـــوازې نـــه کـــړې
چـــې ګرېوانـــو کـــې يـــې ټـــول عمـــر ګرځېـــدلې اوښـــکې.

۲۴/۱/۱۳۶۷

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یون د حاجي محمد خان زوی پر ۱۳۴۲ل کال، د لغمان ولایت د الینګار ولسوالۍ دنیا زیو په یوې روښنفکرې کورنۍ کې زېږېدلی دی.

لومړنۍ زده کړې یې د الینګار ولسوالۍ د سلینګار په لومړني ښوونځي کې سرته رسولي دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لېسه کې شامل شو. پر ۱۳۶۲ل کال له نوموړې لېسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۶۷ل کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پر ۱۳۷۰ل کال له نوموړې څانګې څخه اول نومره بریالی او پر همدې کال بېرته د پښتو څانګې د کدر غړی شو. پر ۱۳۸۵ل کال په نوموړې څانګه

کې د ماسټرۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پایته ورسوله.
محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د(پوهندوی) علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د ((کابل پوهنتون))، ((هیلې)) او((شمشاد ))مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې ((معارف)) مجلې کتونکی غړی هم و. همدا رنګه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.
استاد یون پر ۱۳۸۱ل کال، په جلال اباد کې بېړنۍ لويې جرګې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، د دې جرګې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرګې غړی، بیا د جرګې د غړو له خوا د بېړنۍ لويې جرګې دلومړي منشي په توګه انتخاب شو. استاد یون په دې جرګه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاريخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.
تر دې جرګې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا د دې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لويې جرګې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له خوا ترسره شول.استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرګه کې د نوموړې جرګې د دارالانشا د غړي په توګه خپل فعال رول ادا

کړ. ټاکل شوې وه، استاد يون په ختيزو ولايتونو کې د افغانستان د جمهوري رياست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په کابل کې د لويو جنګسالارانو او ځينو تنظيمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زيات فشار له امله له کاره ګوښه شو. ملګرو ملتونو(UNAMA) استاد يون ته وړانديز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده درو سپارو، خو استاد يون ونه منله او خپلې استادۍ ته يې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته يې د ځينو ملګرو په زيات ټينګار او غوښتنه، د جمهوري رياست د ملي امنيت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د رياست دنده ومنله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي.استاد يون پر ۱۳۸۵ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده يې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد يون د خپلو اکليکوال په توګه په تېرو شلو کلونو کې ګڼ شمېر فرهنګي او ټولنيز خدمتونه ترسره کړي، په ګڼو چاپي، راډيويي او ټلويزيوني مرکو کې يې د واقعيتونو او حقايقو د څرګندييان له امله د خلکو په زړونو کې ځای نيولی دی. که څه هم ډېر خلک د يون ليکنې، مرکې او نظريات خوښوي، خو يو شمېر داسې خلک هم شته، چې د يون سرسختي مخالفين دي. د هغه ملي او ګټورو نظرياتو ته هم غلط رنګ او تعبير ورکوي، دا ډول اشخاص، چې اکثره يې زورواکي او د سياسي ډلو ټپلو غړي او

مشران دي، د استاد یون نظریات خپلو شخصي او تنظیمي ګټو ته خطر بولي، نو ځکه یې په ټینګه مخالفت کوي. زه ددې شاهد یم، هر کله چې یون کومه لیکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې یې مثبت او منفي غبرګونونه دواړه راپارولي دي، منفي غبرګونونه اکثره وخت د هغو اشخاصو او ډلو له خوا وي، چې په تېر کړکېچن سیاسي بهیر کې یې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونه یې مطرح کړي دي.

مثبت غبرګونونه اکثره د ولس دمشرانو، روښنفکرانو او نورو مخورو له خوا وي، خو استاد یون په دغسې سختو اغزنو او تنګو شرایطو کې بیا هم خپل فرهنګي، سیاسي او ټولنیز کار ته دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو یې اوس په مسلسل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر یو نیم کال راهیسې پرې په منظم ډول کار شوی، اوډل شوي او دادی ستاسو مخې ته اینبودل کېږي، په داسې یو دولتي دفتر کې چې بوختیاوې په کې ډېرې وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کار نه دی.استاد یون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکار او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی، په پېښور کې یې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو (د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې) او (د پښتني فرهنګ د ودې پراختیا ټولنې) د همکار په توګه د بېلابېلو لیکوالو په لسګونو

اثـار، ایـډیټ او چـاپ کـړي دي. دغـه راز یـې پـه سـلګونو کـورنیـو مشاعرو، ادبي غونډو او سیمینارونو کې ونډه اخیستې ده، خپله یې هم په لسګونو مشاعرې، سیمینارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.

سربېره پر دې، په یو زیات شمېر، ملي او نړیوالو کنفرانسونو کې یې په ښه ډول د خپل هېواد استازي کړې ده. دلته به یې د اثارو یادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځونې:

| کتاب نوم | خرنګوالی | چاپکال |
| --- | --- | --- |
| • متکور | لومړی شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دویمه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې:

| | | |
| --- | --- | --- |
| • هیلې | ګډه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • نیمګړې ارمانونه | د حیران شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د لوونو فصل | ګډه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د نازو انا یاد | د سیمینار د لیکنو ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د استاد الفت نثري کلیات | د استاد الفت نثرونه | دریم ۱۳۸۷ |
| • سیندونه هم مري | د اسحق ننګیال شعري منتخبات | دویم ۱۳۸۷ |

### ج- ژباړنې:

• د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه
د پوهنوال روستا رتره کي اثر — دویم ۱۳۸۷

- .د افغانستان فرهنګي میراثونو ته یوه کتنه
د نینسي دوپرې اثر دویم ۱۳۸۷
- په افغانستان کې د جګړې جنایتکارانو محاکمه
د پوهنوال روستار تره کي اثر دویم ۱۳۸۷

## د - یونلیکنې:

- د اماراتو سفر د اماراتو یونلیک دویم ۱۳۸۷
- که یون دی یون دی د اروپا یونلیک لومړی ۱۳۸۷
- د پښتنګون ترڅنډو د امریکا یونلیک لومړی ۱۳۸۷

## هـ- څېړنې او شننې:

- د محمد ګل خان مومند اند و ژوند ته یوه لنډه کتنه دویم ۱۳۸۷
- استاد زیار د پښتني فرهنګ یو ځلاند ستوری دویم ۱۳۸۷
- د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي پښتو کتابښود دویم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنګ ته اوښتي زیانونه دویم ۱۳۸۷
- د پښتو شعر هندسي جوړښت شپږم ۱۳۸۷
- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل دویم ۱۳۸۷
- ساینسي پرمختیاوې دویم ۱۳۸۷
- بېرنۍ لویه جرګه ولسواکي او زورواکي دویم ۱۳۸۷
- اندیال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هیله د خپلو سریزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري یون لومړی ۱۳۸۷
- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷
- مرکه او مرکې لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ایډیال لومړی ۱۳۸۷
- د کتابونو په وړمو کې لومړی ۱۳۸۷

- افغانستان په سیاسي کړلیچ کې لومړی ۱۳۸۷
- پښتو لیکنی سمون لومړی ۱۳۸۷
- اوسنۍ رسنۍ لومړی ۱۳۸۷
- که نړیوال ماته وخوري؟ لومړی ۱۳۸۷

خدای(ج) دې استاد یون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله(ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زیار کې ورته دنور زغم او وسپلې هیله لرم.

په درناوي
وفاالرحمن وفا
کابل- افغانستان

